۱۳۹۵ل/۲۰۱۷ز

# ويارلي

## د پښتنو ليکوالو، شاعرانو

او نورو پښتو پېژندونکيو ليکوالو د پېژندنې لارښود

## پينځم ټوک

(س - ش - ښ - ص - ض)

ليکوال: ډاکتر عبدالروف رفيقي

لومړی ټوک
(آ - الف)

دويم ټوک
(ب - پ - ت - ټ - ث)

درېيم ټوک
(ج - ځ - څ - چ - ح - خ)

څلورم ټوک
(د - ډ - ذ - ر - ړ - ز - ژ)

پينځم ټوک
(س - ش - ښ - ص - ض)

شپږم ټوک
(ط - ظ - ع - غ)

اووم ټوک
(ف - ق - ک - ګ - ل)

اتم ټوک
(م)

نهم ټوک
(ن - و - هـ - ي - پښتنې ښځينه ليکوالې
او شاعرانې (آ - ي)

لسم ټوک
(نور پښتو پېژندونکي الف - ي)
د نومونو نيوليک او اخځليکونه

ويارلي
د پښتنو ليکوالو، شاعرانو
او نورو پښتو پېژندونکيو ليکوالو د پېژندنې لارښود
۵
ليکوال: ډاکتر عبدالروف رفيقي



### ډاکتر عبدالروف رفيقي

زوکړه: ٦ اګست ١٩٦٨ز - چمن

د حاجي مدد خان زوی، د خير محمد خان لمسی، د امير بلند خان کړوسی، په ختـه شکرزی ادوزی نصرتزی اڅکزی.

**زدکړې:** ايم ايس سي (نباتات)، ايم اې (اسلامي علوم)، ايم اې (پښتو)، ايم فِل اسلام آباد (د مقالې موضوع: پر پښتو شعر د اقبال اثرات)، پي ايچ ډي (دوکتورا) اسلام اباد (د مقالې موضوع: په افغانستان کې اقبال پېژندنه).

په پښتو، اردو، فارسي او انګليسي ژبو ٦٥ چاپ او ناچاپ آثار لري. د ډاکتر رفيقي څېړنيز مرکز مؤسس دی چې تر دې دمه يې يو شمېر علمي او څېړنيز آثار خپاره کړي.

ډاکتر رفيقي د بېلابېلو علمي، ادبي او څېړنيزو ادارو غړيتوب لري. د کوټې پښتو اکاډمۍ ستر سکرتر پاتې شوی او اوس يې د ايګزېکټيو کونسل غړی، د علامه اقبال اکاډمۍ د بورډ آف ګورنرز غړی، د بلوچستان ايجوکېشن فاونډېشن د بور ډآف ډايرېکټرز غړی، د بېلابېلو ژبو د يو شمېر څېړنيزو ژورنالونو چلوونکی، مدير، او کتنپلاوي غړيتوب يې لرلی.

د علمي، ادبي خدماتو د ستاينې مډالونه، ايوارډونه او ستاينليکونه د بېلابېلو هېوادونو د علمي او ادبي ټولنو لخوا ورکړل شوي. په څېړنه کې يې له افغانستانه د علامه حبيبي ايوارډ ورکړل شوی او د ختيځو سيمو د ليکوالو او ژورنالستانو د اتحاديې لخوا يې په جلال آباد کې ستاينغونډه جوړه شوې (پښتو څېړنه او دوه څېړونکي استاد زلمی هېوادمل او ډاکتر عبدالروف رفيقي).

دغه راز ډاکتر عبدالروف رفيقي په هېواد او له هېواده بهر په بېلابېلو علمي، ادبي او څېړنيزو غونډو کې ګډون کړی او خپلې علمي او څېړنيزې ليکنې يې ګډونوالو ته ور اوړولې دي...

www.melitahrik.com

د خپرونو لړ: (۱۲٦)





### مننه او کور ودانی

د افغانستان ملي تحريک د هېواد له فرهنګپالو شخصيتونو قدرمنو ښاغلي (**حاجي احمد شاه ساپي**) او ښاغلي (**ذاکر الله مسکينيار**) څخه د زړه له تله مننه کوي او کور ودانی ورته وايي چې ددې مهم اثر د پينځم ټوک چاپ ته يې اوږه ورکړه، درنښت و خوشحالي يې په برخه شه.

په درنښت
د ملي تحريک فرهنګي څانګه

# ويـــاړلي

## د پښتنو ليکوالو، شاعرانو

او نورو پښتو پېژندونکيو ليکوالو د پېژندنې لارښود

**پينځم ټوک**


ليکوال

**ډاکتر عبدالروف رفيقي**



۱۳۹۵ل/ ۲۰۱۷ز

بسم الله الرحمن الرحيم

# ویـــــاړلي؛ پينځم ټوک

د پښتنو ليکوالو، شاعرانو او نورو پښتو پېژندونکيو ليکوالو د پېژندنې لارښود

ليکوال: **ډاکتر عبدالروف رفيقي**

**+92 (0) 333 781 77 68**

**abdulraufrafiqui@yahoo.com**

**8-21/220-221 Kasi Road- Quetta.**

خپرندوی: **د افغانستان ملي تحريک**

**او د ډاکتر رفيقي څېړنيز مرکز**

کمپوزران: **بسم الله خيالي، خليل الله تصميم، مطيع الله محرابي او محمد سليمي**

چاپ وار: **لومړی**

چاپشمېر: **۱۰۰۰ ټوکه**

چاپکال: **۱۳۹۵ل/ ۲۰۱۷ز**

ډيزاين: **سپين سهار**

چاپځی: **اسد دانش مطبعه- کابل/ ۰۷۰۰۴۴۹۲۹۸**

# تـړون

زه خپل دغه اثر د خپل قدرمن پلار **الحاج مدد خان اڅکزي** سپېڅلې اروا ته ډالۍ کوم.

«رفيقي»

# د وياړمن ولس ((وياړلي))

هغه ولس چې تاريخ يې له حماسو، وياړونو، لوړو ژورو ډک وي، طبعاً چې وياړلي لري. پښتانه په ټوله کې افغان ولس د نړۍ داسې يو ملت دی چې جنگ او فرهنگ دواړه يې د تاريخ پاڼې دي، جنگ پرې کله هم تپل شوی او کله يې هم خپله جنگ ته دانگلي، خو فرهنگ يې په فطرت کې نغښتی دی< پښتو ولسي ادبيات د افغاني ټولنې په تېره بيا د پښتني ټولنې د عامه تفکر تر ټولو ښه پانگه ده چې د نړۍ د بل هېڅ ملت گړني ادبيات يې د نفوسو او جغرافيې په اندول له څومره والي او څرنگوالي سره د پرتلنې جوگه نه دي. پښتانه سياسي مشران که څه هم د خپل عصر له غوښتنو سره سم تورې کارونې ته اړ شوي، قلم او کلتور يې هم له ياده نه دي ايستلي. د پښتو ليکني ادب لومړنۍ راسته راغلې بېلگه چې د امير کروړ له يوې وياړنې پيلېږي، له علم، ادب او فرهنگ سره د پښتنو واکمنو مينه په ډاگه کوي. په خپله امير کروړ هم شاعر و، هم جنرال او هم سياستوال. غوريان، سوريان او لوديان ټول د تورې او قلم، خاوندان وو، سلطان بهلول لودي عادل واکمن، فرهنگيال او ادبپال شخصيت تېر شوی، تر هغه وروسته پير روښان او روښانيان له يوې مخې د جنگ او فرهنگ د دواړو ډگرونو اتلان وو. خوشال او کورنۍ يې د تورې قلم ځلانده ستوري وو، ميرويس نيکه او د کورنۍ غړي يې د سياست او ادب غوره بېلگې دي. احمد شاه بابا او د کورنۍ غړي يې هم په دواړو ډگرونو کې تلپاتې اثار پرې ايښي او دا لړۍ ان تر ننه دوام لري، پاچا خان او اولادونه يې، خان شهيد عبدالصمد خان اڅکزی او د کورنۍ غړي يې، وزير محمد گل خان مومند او نور يې په شلمه پېړۍ کې ښه مثالونه دي. له انساني فرهنگ او کلتورپالنې سره د پښتنو له بې

کچېر مینې سره سره بیا هم په نړۍ کې د فرهنګي شهرت په اندول ددې قوم جنګي شهرت زیات دی. ددې کار یو علت به همدا وي لکه څنګه چې موږ ته په کار ده نورو ته مو خپل ځان نه دی ورپېژندلی. د فرهنګي شتمنیو د خوندیتابه، پېژندنې او څلا یوه لاره د دغسې اثارو لیکل دي چې اوس زموږ او تاسو په لاس کې دي.
د ((ویاړلي)) په نامه دا اثر د ټولو نه، خو د اکثرو هغو لیکوالو او شاعرانو یوه لویه او بډایه تذکره ده چې په پښتو ژبه یې څه لیکلي دي. دا اثر یوازې ادبي تذکره نه ده، هر چاچې څه په پښتو لیکلي دي، هغه یې ټول یا هم اکثره په کې معرفي کړي دي. ددې اثر لیکوال ښاغلي (ډاکټر عبدالرووف رفیقي) پوره دیارلس کاله ددې اثر پر لیکلو او بشپړاوي تېر کړي او پایله کې یې نږدې ټول هغه لیکوال په لنډیز سره معرفي کړي چې د پښتو ژبې له لاسته راغلي لیکنې اثر څخه بیا تردې دمه یې اثار لیکلي، په دې اثر کې جغرافیایي، مذهبي، قومي، زماني، سیاسي او نور بریدونه د لیکوالو پېژندنې ته د قید په توګه په پام کې نه دي نیول شوي، په دې مانا چې هر چا د نړۍ په هر ګوټ کې په پښتو ژبه څه لیکلي هغوی دلته په لنډیز سره پېژندل شوي دي. د زیات تفصیل لپاره ورته اخځ هم په ګوته شوی. لیکوال ربنتیا هم تر حده زیات کړاو ګاللی، دیارلس کاله یې ورته شپې رڼې کړي، د ژوند خوږې شېبې، ان د اولادونو هغه حق چې پر پلار یې لري او هغه مهال چې پلار باید پر خپلو بچو د مینې او عاطفې وزرونه وغوړوي، هغه یې هم له دې اثره نذرانه کړی دی، لوستونکي کولای شي، ددې اثر سریزه او هغه نظم چې ښاغلي رفیقي صیب ددې اثر په پیل کې راوړي، وګوري بیا به یې نو ددې اثر په باب د لیکوال ټول زخمتونه له سترګو تېر شي.
د (۱۳۹۵ل) کال په وروستیو کې مې په کابل کې له رفیقي صیب سره وکتل، له هغه څخه مې د هغه د نویو اثارو په باب وپوښتل، د همدې (ویاړلي) اثر یادونه یې راته وکړه او ویې ویل چې د (درې زره تنه ښځینه لیکوالو) په ګډون مې (پنځه دېرش زره لیکوال) په کې معرفي کړي دي. زه تر حده زیات خوشاله شوم او دا کار مې د هغو کړیو او اشخاصو د ذهنیت د روښانتیا لپاره ښه دلیل وباله چې پښتون او په ټوله کې افغان ولس فرهنګ ته نامتمایل ولس بولي، له رفیقي سره مې ددې اثر د لسو واړو ټوکونو د چاپ ژمنه وکړه، د افغانستان ملي تحریک چې تر دې وړاندې یې پر (۱۳۹۳ ل) کال (۲۰) او په (۱۳۹۴ ل) کال (۱۰۲) عنوانه کتابونه چاپ کړي وو، د (۱۳۹۵) ل کال لپاره یې د همدې مهم اثر د چاپ لپاره هلې ځلې پیل کړې. له نیکه مرغه چې بېلابېلو هېوادوالو موږ سره ددې اثر د چاپ لپاره مالي او معنوي مرسته وکړه او دادی دا مهم اثر د چاپ جوګه شو. موږ د

کتاب له لیکوال ښاغلي (ډاکټر رفیقي صیب) څخه ډېره مننه کوو چې داسې ستر کار ته یې اوږه ورکړه او د عمر یوه ډېره خوږه برخه یې د ویاړمن ولس ویاړلو ته وقف کړه او دا ((ویاړلي)) یې په خپلو ویاړلو ګوتو په دې مهم اثر کې خوندي کړل. د کتاب د چاپ لپاره له مالي مرستندویانو هم ډېره مننه کوو چې په خپله مالي مرسته یې خپله ملي، افغاني، اسلامي او انساني مینه په زبات ورسوله، د ټولو دې کور ودان وي.

په درنښت

پوهاند محمد اسمعیل یون
د افغانستان ملي تحریک په استازۍ

## *بسم الله الرحمن الرحيم*

### سريزه

يوويشتمه پيړۍ د علومو د روښانتيا او پرمختګ پيړۍ ده انسان د تاريخ په اوږدو کې له اوږدو ارتقايي پړاوونو راتير شوی د انکشافاتو يوه داسې مزله ته راورسيده چې تر ابده به نور تر ډيره په تشو خبرو باور نه شي کولای.

پښتون قام چې د پامير له لمنو څخه د عربو د بحيرې تر څنډو خور وور پروت دی د خپل نړيوال ستراتيژيک موقعيت په ارزښت پوهه شوی دی. د شرق و غرب د وچوښې لار له همدغې خړې پړې خاورې څخه تيريږي او رک د آسيا په زړه کې ميشت دغه پښتون قام به په راتلونکې کې د نړۍ د هر ډول لويو لويو فيصلو په کولو کې خپل يو امتيازي ونډه ولري او دا وينا تر لمر روښانه ده چې هغه د علامه اقبال خبره چې:

آسيا يک پيـکر آب و گل است
ملت افغان در آن پيکر دل است
از فســـاد او فساد اسيا
در کشاد او کشاد آسيا

زما په اند مونږ د دغه قام د وياړلي تاريخ په داسې ځانيو کې ساه اخلو چې له تيرو څلورو لسيزو راپيل شوی او لا روان دی. د نړۍ د لويو ځواکونو د جنګ د ميدان نصيبه دغې خاورې ته رسيدلې ده د بدمرغيو په دغه جريان کې علمي مراکز تالا ترغه، ښوونځي سوځلي، کتابونه له منځه تللي د باروتو دودونه د آسمان په لور جيګيږي او په همدغه حالاتو کې زه مايوس نه يم بلکه دغه هر څه ته ما د پښتني رنسانس نوم ورکړی دی او زه هم په دغه زمان او مکان کې راټوکيدلی رالوی سوی او د دغه هر څه د سترګو ليدلی شاهد يم.

خو څښتن تعالی فضل و کرم رابانديې وشو چې قلم، کاغذ ته مې مخه شوه د پلار (الحاج مدد خان اڅکزي) دې مې ارواح ښاد وي چې دغه لوری ته يې سيخ کړم لوړې، تندې، مسافرتونه، يخونه، ګرمۍ هر څه مې په ځان ومنل د رسمي زده کړو ترڅنګ مې ديني زده کړې هم تر سره کړې او هم رسمې

وظيفې، غرض يو اوږد علمي سفر مې راپېل کړ.نړيوال کنفرانسونه، کتابونه، کتابتونونه د عربو عجم د خاورو سياحتونه هر څه هر څه.... ډير کلونه پخوا مې د ابن نديم الفهرست تر مطالعه لاندې راغلی وو ابن نديم چې پخپله يې د کتابونو د پلورولو کار کاوه، يو کار يې دا کړی وو چې کوم کتاب به په لاس ورتلی د هغه يادانبت به يې خوندي کاوه د کتاب نوم، د ليکوال نوم او موضوع. خو دغه هر څه يې بيخي په اختصار ليکه د وروسته د عربو پر خاورو د چنگيز او هلاکو تاړاکونه راغله د هر څه تر څنگ يې علمي زيانونه هم واړول. کتابتونونه، تالا ترغه او حتی کتابونه په سيندونو کې لاهو کړل شوه. وروسته چې د ابن نديم د الفهرست دغه نسخه کشف شوه د دنيا په بيلا بيلو ژبو وژباړل شوه نو ډير داسې کتابونه دي چې اوس يې په نړۍ کې وجود هم نشته فقط نوم يې د ابن نديم په دغه يادانبتونو خوندي پاتې شوی دی. د هغو ليکوالو نومونه چې بل هيڅ ځای يې حتی يادونه هم نه ده راغلې د ابن نديم د همدغه فهرست له برکته د تاريخ په حافظه کې نقش پاتې شو. هغه وخت مې په زړه کې دا خيال را گرځيدلی وو چې کشکې زه د پښتنو علمي رجالو د نومونو او د هغو د علمي آثارو په باب دا ډول يو اثر ترتيب کړم چې خلکو ته په ځېرنو کې په درد وخوري خو هغه وخت دغه خيال هم تش خيال پاتې شو ځکه چې زه پوهيدم چې دا ډير گران کار دی او ډيره حوصله او عزم غواړي ما ځان ته د دغه کار توفيق نه ليده، کلونه تيريده د علمي رجالو په باب مې د پلټنو مينه زياتيده تذکرو او د رجالو په باب ليکلو اثارو مطالعې به خوند راکاوه ما چې به د عربو د امام ابن جوزي المنتظم راواخيسته ځان ته به مې په ملامت ويل چې وگوره دا سړي په هغه محدودو امکاناتو کې دا ډول کار کړی دی. او ته درې وخته ډوډۍ خورې حاصل هيڅ، د ايران د علی اکبر دهخدا د لغت نامې به نور سره وښورول چې ته ويده يې او خوبونه کوې خدمت دې کوم دی؟ ژوند يو وار دی يوه خوله ساه ده گوره چيرته وخېژي دا ډول زما په زړه کې د ابن نديم د الفهرست ايښودل شوی هغه د رجالو د کار زنۍ قرار قرار راټوکيده د عربو د رجالو په باب د اثارو مطالعه چې به مې وکړه معجمونه چې به مې وکتل ليونی به شوم چې بس سمدستي دا کار پيل کړه د معجم المؤلفين، معجم الادبا، معجم الحفاظ، معجم القرا، الاعلام الزرکلی او د فارسي د دانشنامو او فرهنگونو او دا ډول د انگليسي څوک، کله او چا مطالعو به مې د سينې پر هغه بل سوی اور نور علمي تيل را چپه کړه، چې زما په سينه کې له کلونو بل را روان وو هغه وخت وو چې د نن څخه څوارلسم کاله له مخه مې په دا کار پيل وکړ.

تر اوسه پورې د پښتو ژبې په باب د تر سره شوو څېړنو په رڼا کې دا خبره جوته شوې ده چې په پښتو کې د باقاعده تذکره ليکنې پيل د سليمان ماکو له تذکرة الاولياء را پيليږي او د پټې خزانې فرهنگ زبان و ادبيات پښتو تير هير شاعران، د هشنغر ادب، پټ ستوري، د کسي گلان او داسې نورو بې شميرو تذکرو راتيريږي او خپل دغه مزل يې د عادل اڅکزي د چمن تر گلونو رارسولی دی، زه دلته نه خو په پښتو کې د تذکرو د تاريخي سير پر څېړنه نه خپل وخت او نه هم ستاسو وخت صرفوم ځکه چې دا د اوس لپاره زما

موضوع نه ده. یادونه یې تش په دې کوم چې ستاسو پاملرنه د دغه موضوع سره اړوند مطالبو ته وشي، د پښتو پخوانیو تذکرو په باب د جناب حبیب الله رافع د پښتو پخوانۍ تذکرې او همدا ډول د محمد داوود وفا د پښتو تذکرو تذکره په خپله لمن کې تر خپله ډیره حده دغه مطالب لري.

په دغه تذکرو کې ځیني په سیمه ییزو بنیادونو لیکل شوي لکه ابشارونه د بهلول (د ژوب د سیمې)، د چمن گلونه (د چمن د حوزې)، د ارغند د چپو ژبه (د لوی کندهار د حوزې تذکره).

د دې تر څنگ ځیني پښتو تذکرې بیا پر توکمیزو بنیادونو باندې ترتیب شوي دي لکه مومند ادبي ستوري (د مومندو لیکوالو او شاعرانو تذکره)، د خوشحال د بڼ گلونه (د ختکو د ځینو لیکوالو او شاعرانو تذکر)، د پښتو تذکرو په دغه بهیر کې بیا ځیني تذکرې په پخوانیو لیکوالو او شاعرانو لیکل شوی دي لکه پټ ستوري، تیر هیر شاعران وغیره.ځینو تذکره لیکونکو بیا پر خپلو معاصرو لیکوالو او شاعرانو باندې لیکنې کړي دي لکه اوسني لیکوال، اوسني شاعران او پښتانه لیکوال وغیره.

ما یوې داسې مربوطې منبع ومنځ ته د راوړلو ضرورت احساساوه چې د زمان او مکان د قیده آزاده وي له پیله تر دې دمه کسان پکښې وي ځکه مې دې کار ته لاس واچاوه او ستا په لاسونو کې موجود زما دغه زیار د دغه کار یوه کړی ده.

د خدای تعالی مهرباني وه چې ماته یې یو ښه خپل ځاني غني کتابتون هم راپیرزو کړ په دغه کتابتون کې د پرتو پنځه دیرش زرو شاوو خوا چاپي او خطي کتابونو به هره ورځ ماته دا تقاضا کول چې زه هم د پښتنو لیکوال او شاعرانو په باب همدا ډول یو خوندور معجم تیار کړم چې راتلونکي نسلونه گټه ځینې پورته کړي.

دا هغه شپې وې چې زه د دکتورا د مقالې د لیکلوڅخه فارغ شوی وم، نو دې کار ته مې لاس ورواچاوه او د دکتورا ډیگري په دا بل کال راوسپارل شوه، نو ځان ته به مې ویله چې گوره رفیقي... چې غرور ونکړې دغه داکتري ماکتري د دې معنی نه لري چې ته نو اوس لوی سړی شوې دغه فقط داسې یو سند دی چې ته اوس په دغه سړک د سورلۍ د چلولو حیثیت لرې.

لومړی مې د خپل کتابتون څخه د دغه موضوع په اړه منابع رابیلې کړې بیا مې له یوه یوه څخه یاداښتونه واخیسته د دغه موضوع په اړه مې د خارجي منابعو څخه د گټې اخستلو په خاطر بیلا بیلو سیمو او هیوادونو ته سفر وکړ تر څو تر خپله وسه د دې موضوع څه نا څه حق اداء کړم، د کار زمینه مې د نوي ځیرنیز میتود مطابق داسې وضعه کړه چې جلا جلا پاڼې مې پرې کړې د هر کس لپاره مې پر جلاجلا پاڼو له هر ماخذه جلا جلا یاداښتونه اخستل پیل کړه لومړی د هغه کس تخلص او نوم، لاندې تر هغه د ده د زوکړې نېټه هغه که به په قمري سنه په لاس راغله او که په شمسي، یا که په میلادي سنه په لاس راغلې ده، هغه مې راخستې ده. له هغه پس مې د ده د زوکړې ځای، کلی، تحصیل، قریه، ضلعه، صوبه یا ولایت هر

څه چې په لاس راغلي راټول کړي دي. بيا مې د هغه د پلار نيکه نومونه راخستې دي، د هغه خټه زده کړې، دندې، که په لاس راغلي راخستي دي.
دلته د يادولو وړ ده چې کله کله داسې هم شوي وه، چې کومې تذکرې د دغه وياړلي د زوکړې نېټه يوه ليکلې او کومې بيا بله، د يوه سړي په باب په مختلفو تذکرو کې د زوکړې د نېټې په لړ کې بېلا بېلې سنې راوړل تاريخي مغالطه پېښوي د دې حل مې داسې ترسره کړ چې په ماخذاتو کې مې د هغه متعلقه ماخذ مخ ته مې په بريکټ کې په بولډ خط هغې اختلافي سنه راوړې او بيا مې د بريکټ پس د هغه ماخذ د هغه مخونو شميرې راوړي دي پر کومو چې دغه يادونې راغلي دي. داپه دې چې څېړونکي نور د خپلو شننو او مطالعاتو په رڼا کې د بېلا بېلو ماخذونو په استفادې صحيح نېټې ته ځان ور ورسوي. همدا ډول د ډېرو ليکوالو سره خو دا پېښه هم شوې وه چې ځينو ماخذاتو د يوې سيمې بللی او ځينو بيا د بلې، چا يې د پلار نوم يو راوړی او چا يې بل، چا په خټه يو څه بللی او ځينو تذکرو بيا بل څه، دغه هر څه مې تر خپله وسه خورا په څېړنيز ميتود ترتيب کړي او دا ډول مې دغه سمونې او يادابنتونه په ماخذونو کې د اړوند ماخذ مخ ته په بريکټ کې په بولډ خط ليکلي، مخ ته مې يې د هغه ماخذ د صفحې شميره ورته ليکلې ده.
د هغه پس مې د هغه وياړلي اثارو ته پاملرنه کړې ده، د اثر نوم، نظم يا نثر، موضوع مې ياده کړې که خطي نسخه ده نو د نړۍ په کوم ارشيف کې يا په کوم شخصي کتابتون کې په کومه شميره خوندي ده، د کتاب نوم، کتابت، د پاڼو کچه وغيره مې راخستې، که مې د هم هغه اثر د کومې بلې نسخې احوال پيدا کړی يا مې تر دې لا هم د زياتو نسخو څرک ميندلی هغه مې ټول را اخيستې دي له هغه پس که هغه اثر چاپ شوی وي د هغه تفصيل زيار، سريزه، اهتمام، چاپ وغيره اداره، سنه، مخونه او حتی که يې څو ايډشنونه راغلي وي هغه مې رااخيستي دي.
د هغه وياړلي د ژوند او د اثارو د پيژندنې پس مې د ده د پيژندنې په لور قلم ور غځولی دی د ده په پيژندنې کې مې لومړی سيمينارونه رااخيستې دي.
په دې به يو خو خلک خبر شي چې پر دغه وياړلي تر اوسه څومره سيمينارونه په بېلا بېلو فرهنگي حوزو کې تر سره شوي دي او بله گټه به يې دا وي چې د دغه وياړلو په باب به د بېلا بېلو فرهنگي حوزو د فرهنگ پالو ټولنو او دولتي ادارو پام ور واوړي چې که پر پلانکي وياړلي پلانۍ ډول سيمينار جوړ شوی وو نو موږ ولې پر پلانکي همدا ډول سيمينار ونه کړو، مثلاً د هغو د زيږيدو يا مړينې د کلونو پر بنياد به دوی په راتلونکې کې د اوس څخه لا بنستيز گامونه اخيستلای شي او سيمينارونه ترتيبولای شي.
له هغه پس د هغه شخصيت د ژوند کارونو او فن و هنر په باب که کوم مونوگرافونه، پي ايچ ډي (دکتورا)، ايم فل، ايم ای او حتی د علمي ترفيع لپاره کومې مقالې ليکل شوي او ماته په لاس راغلي هغه مې په

همدغه ترتیب راوړي دي.
د ویاړلي د پیژندنې دغه برخه په خصوص سره د پوهنتونونو د استادانو او بیا د شاګردانو لپاره خورا مهمه ده چې دا ډول به یو خو دوی د دغه ویاړلو په باب د لیکل شوو مونوګرافونو معلومات ترلاسه کړي او بل دا چې د دغو ویاړلو د نوو څېړنو لپاره به یو خو دوی له تکراري موضوعاتو بچ پاتې شي او بل به د هغو د فن او فکر د نورو اړخونو په باب د مونوګرافونو د موضوعاتو د ټاکلو جوګه شي. دلته د پوهنتونونو پرکالخوایانو او استادانو دا مهمه ذمه داري راځي چې هغه باید په ډېر دیانت داري سره او د علمي تقدس د برقراره ساتلو لپاره شاګردانو ته تکراري موضوع ور نه کړي، دا ډول به هغه شاګردان یا هغه څېړونکي یوې خواته پر تکراري موضوع له شخوند وهلو څخه بچ پاتې شي او بل به د ادبیاتو نړۍ ته پر یوه نوې څېړنیزه موضوع نوې څېړنه رامنځته شي دلته استادانو ته دا هم کتل دي چې پر دغه موضوع خو به په پېښور، کوټه، جلال آباد، کابل، مسکو، ډیلي، لاهور، ملتان یا د نړۍ له کوم بلې حوزې له کوم پوهنتون څخه تردې دمخه کار نه وي شوی داسې به دوي له تکراري موضوع څخه بچ پاتې شي. دا ډول به د استاد د استادۍ، د څېړونکي د څېړنې او د هغه پوهنتون د علمي مقام لوړوالی خوندي پاتې شي.
په دریمه مرحله کې مې د هغه ویاړلي په باب د لیکل شوو کتابونو تفصیل راوړی دی چې د هغه پر کوم اړخ چا، چیرته، کوم کتاب چاپ کړی یا لیکلی هغه تفصیلات راوړي دي.
د دې ګټه به دا وي چې علاقه مندان او څېړونکي به له تکراري موضوعاتو خلاص شي یو خو به د دغه ویاړلو په باب د ترسره شوو کارونو او لیکل شوو کتابونو په احوال خبر شي او بل به په راتلونکي کې د هغه شخصیت په باب نوو موضوعاتو ته مراجعه وکړي.
په څلورمه برخه کې مې د هغه ویاړلي په باب چې د نړۍ په کوم ګوټ کې په کومه مجله کې کومه مقاله راغلې د هغه تفصیل مې راوړی، لومړی د مجلې نوم، د خپریدو ځای، د مقالې عنوان، د مقالې لیکوونکی، د هغه مجلې ګڼه، کال، میاشت، او مخونه د فلاني تر فلاني مې ثبت کړي دي.
په څېړنیز لحاظ به څېړونکي د هغه ویاړلي په باب د لیکل شوو مقالو نه خبر شي او بل به د هغوی په باب د نوو مقالو لیکنو پر وخت به د دغه مقالو د موضوعاتو څخه ګټه ترلاسه کړي.
په دغه برخه کې مې د مقالو ترتیب هم په الفبایي توګه په نظر کې نیولی دی لکه اباسین، اولس، پښتو، پلوشه، تلوسه، تنده..... هیواد وغیره.
په پنځمه برخه کې مې د هغه ویاړلی په باب د خپلو منابعو او ماخذونو تفصیل راوړی د کتاب نوم او صفحه نمبر یا مجله، میاشت، کال او مخونه مې راخیستي تر څو که کوم بل څېړونکي پر دغه ویاړلي نوره څېړنه کوي نو له همدغو منابعو به ګټه ترلاسه کولای شي.
د دې تر څنګ مې د دغه ویاړلي سره اړوند تصویري برخه هم په پام کې نیولې ده چې پنځه برخې لري،

لومړی د هغه وياړلي که عکس په لاس راغلی دی هغه مې د ده تر نامه لاندې راوړی دی، دوهم که يې د کومې خطي نسخې بيلګې په لاس راغلي هغه مې راوړي دي، دريم د چاپي کتابونو کوم ټايټل مې راوړی دی، څلورم که د هغه ليکوال د خپل لاس په ليکل شوو تورو باندې بريالی شوی هغه مې راوړي دي. په پنځمه برخه کې که د هغه وياړلي د قبر تصوير که په لاس راغلی وي هغه مې هم خوندي کړی دی، تصويري برخه مې ځکه ضروري بللې ده چې د تحقيق په دغه خوشکه موضوع کې مې د لوستونکي جمالياتي ذوق په پام کې نيولی دی چې هغه د کتاب د لوستلو په وخت کې حوصله له لاسه ور نه کړي د هغه د تشويق د لا زياتولو لپاره مې دغه هر اړخيزه تصويري برخه لازمي ګڼلې ده، يو خو به د هغه وياړلي د ژوند د اثارو په اړه د ليک تر څنګ د هغه انځوريزه برخه هم خوندي پاتې شي او بل د لوستونکي ذوق او شوق لا پسې خوندور کيږي. او مطالعې ته به دوام ورکوي، چې د هغه پس د هغه وياړلي اثار هم وګوري که يې په ليکلي بڼه تر اثارو تير شي نو به يې په تصوير بڼه د هغه د خطي نسخو يا چاپي کتابو ټايټلونه راوګرځوي، يا به د هغه وياړلي د شخصي انځور جاذبيت او د هغه دنګه قواره لوستونکی دې ته وګورماي چې د ده په اثارو پسې چې دلته يې ما په بشپړه توګه چې څومره وو تفصيلات راوړي دي او هغه به مطالعه کړي.

په دغه اوږده ديارلس کلنۍ دوره کې چې ما د دغه اثر په ترتيبولو کې لګولي دي په زرونو **ماخذونه** مې لټولي، لوستلي او له هغو مې اړونده مطالب تاسو ته برابر کړي دي. تاسې څه فکر کوئ چې زه به څومره په دغه کار ستړی شوی يم؟ څومره شپې به مې پرې روڼې کړې وي؟ د خپل خوږ ژوندانه څومره سهارونه به مې د دغه کار قرباني کړي وي؟ او د دې کار پر سر به د څومره ماځيګرونو له رنګينيو راتير شوی يم. د څومره آشنايانو له خوندورو محفلونو به محروم پاتې شوی يم؟ د سهار د نهو بجو څخه د ماځيګر تر پنځه وو بجو رسمي دفتري بوختياوې، له هغه پس کورنۍ چارې، اولادونه، روزنه، د ښنتنو د کلي او کور چارې، خپل پردي، غم ښادي..... خو تاسو يقين وکړئ چې يوه يوه ثانيه به مې سپموله او دغه درانه کار ته به مې اوږه ورکوله.

په کور کې به مې د اولادونو د حق وخت هم دغه کار ته ورکاوه، د انډيوالانو ا و خپلوانو د غورو او ګپو هم، بابا دې خدای وبخښي د هغه سره به مې د زړه خواله هم کوله، د دې څېړنې کار به هم دوام درلود. نږدې دوستان مې هم ښه خبر دي چې ما به په محفل کې هم د بيلا بېلو ماخذاتو نوټونه اخيستل او د دوی زړونه به مې هم ساتل چې کله به دوی تر نفسه راغله نو ما به ورته وخندل چې وا وروره ((دست به کار او دل به يار)). خو ما به ويل چې: ((هم لال به دست ايد، هم دل يار نه رنجد)).

زياتره به ميلمستياوې راڅخه پاتې وې، ودونو ته به نه تلم، خو په عين حال کې به مې دا کوشش کاوه چې کومه فاتحه راڅخه پاتې نه شي، زما کله هم نه هيريږي چې زما ماشومانې لوښې ((خاشه او پينه)) (هدی

خان او مأوا خان چې زه له نازه یوه خاشه یعنې د زړه خاشه او پینه یعنې د زخمي زړه پینه بولم) چې دوی به د ډوډۍ لپاره زما د رابللو په خاطر له اوار دسترخانه او زما تر لیکتونه ځغاستې او راځغاستې چې بابا ډوډۍ سړه شوه دسترخان اوار دی، ژر راځه.... خو زه به دې لالیچ اخیستی وم چې ته ودریږه چې دا مطلب لا پوره کړم اوس لا برق شته داسې چې بیا برق هم ولاړ شي او دا کار هم نیمګړی پاتې شي، آخر پیني او خاشې دومره چلونه راسره زده کړه چې راغلې به دروازې کې به ودریدې چې بابا پنځوس ځله درته وایم چې راځه بابا ډوډۍ سړه سوه، راځه بابا ډوډۍ سړه سوه، راځه بابا ډوډۍ سړه سوه..... تر هغه وخته به ولاړې وې چې زه به یې له میزه راپاڅولم. داسې خو ډېر ځله راغله چې د جمعې په ورځ به له دفتره د راتلو پس به چې کله په کور ننوتم د دوشنبې په سهار به بېرته د دفتر لپاره له کوره راوتم. او که به چیرې کومه بله اتفاقیه رخصتي پېښه شوه هغه به مې هم تر دغه کار صدقه کړه. په سفر کې به مې جلا جلا مواد اخیستې وو او په سورلۍ کې به مې هم نوټونه اخیستل او بیا چې به خپل لیکتون ته راورسیدم نو هغه ټول نوټونه به مې سره یو ځای کړل. لس پنځلس شپې پس به مې د شوي کار خورې ورې پاڼې د ویاړلو د تخلصونو په ترتیب سره وواډلې. کله کله به چې تکراري نومونه پیښې شول بیا به مې د هغه ټولو پاڼو په پرتلیزو توګه هغه معلومات سره را یوځای کړل.

یوه ضروري یادونه:

- کیدای شي ځینې نومونه دي تکراراً راغلي وي خو ما بشپړه توان په کار اچولی دی چې لوستونکي د دې مشکل سره مخامخ نه کړم که چیرې کوم نوم تکراري راغلی وي هغه دې زما د انساني سهوې نتیجه وګڼل شي.
- ما هڅه کړې ده چې اصل منابعو ته لاس رسی ولرم چې زه په کې تر ډېره حده بریالی شوی هم یم. خو کله چې به اصل منبع په لاس رانغله نو له هغه منابعو به مې یاداښتونه واخیستل په کوم کې چې به د دغه ویاړلي یادونې راغلي وي.
- د یادونې وړ ده چې په ادبي تاریخونو او ادبي تاریخ ډوله اثارو کې د بیخي ډېرو کسانو او د هغو د شعري یا نثري اثارو یادونې راغلي چې ما د هر یوه په پای کې په هغو کې د ځینو یادونې خو راوړي دي او د ټولو یادونه یوې خوا ته بې ځایه اوږودوالی ښکاره کیده او بلې خوا ته تکراري چې ما د خپل وخت سره سره د لوستونکو د وخت د ځایع کیدو سبب ګاڼه.

په ماخذاتو کې ځینې بیخي کلیدي او بنیادی **ماخذونه** دي چې هغه به تاسو ته تکراراً د زیاترو کسانو په ماخذاتو کې په مخه درشي د هغو یادونه ځکه ضروري وه چې یوې خواته خو دا د علمي دیانت تقاضا وه او بلې خواته په هغو کې همدومره مواد وو لکه فرهنګ زبان و

ادبیات پښتو، د قلم خاوندان، پښتانه شعرا، د ورمو بهیر نور......

- استاد زلمي هیوادمل د فرهنگ زبان و ادبیات پشتو تر څنگ د پښتو ادبي تاریخ د منابعو پیژندنه او ارزیابي کې ځینې خورا مهم یاداښتونه راخیستي دي د ځینو پخوانیو تذکرو تیروتنې یې هم په گوته کړي او ځینې کسان یې بیخي په لومړي ځل له نورو منابعو راخیستي چې ما همدلته د هغو سمونې او هغه کسان له همدغه ماخذه تاسې ته وړاندې کړي دي.
- ما کوشش کړی چې چا په پښتو کې کوم ډول کار کړی دی لږ دی که ډیر دی، نظم دی که نثر، طب دی که تاریخ، شرحه ده که فلسفه، صرف دی او که نحو، تفسیر دی که تحقیق، هر څه چې هر چا، هر ځای لیکلي د هغو په راوړلو کې مې خپله انساني هڅه کړې ده چې د زمان او مکان له قید پرته هر څه تاسو ته در وسپارم.
- یوې خواته مې هغه علماء او منورین چې د شرقي، مذهبي او دیني علومو فارغان دي لیکنې یې کړي دي د هغو هر څه چې په لاس راغلي دي د هغه احاطه مې کړې ده او د دې تر څنگه مې بلې خواته د غربي علومو د فارغانو منورینو د پښتو لیکنو یادونې راوړي دي ځکه چې یو خو په علم کې حد نشته علم د انسانانو مشترکه میراث دي هر څه چې د انسانیت او بشریت په درد خوري هغه هر څه باید د تاریخ برخه جوړه شي او بل دا چې په دغه اثر کې ما د مستړ او ملا تر منځ د اغیارو ټاکل شوي هغه فکري پولې له منځه وړي دي چې د کرکې او نفرت پر بنیادونو جوړ شوي دي. او په دغسې کولو کې ما د دوی زړونه د مینې په تار د گنډلو کوشش کړی دی، ملایان او علماء به د غربي علومو په کتابونو او موضوعاتو خبر شي. چې ښه زموږ په ژبه کې دغه اثار هم شته باید مطالعه یې کړو او بلې خواته به د غربي علومو فارغان د اسلامي دیني او مذهبي افکارو او عقایدو په کتابونو خبر شي او د هغه د مطالعې څخه به استفاده وکړی شي دا ډول به د زړونو هغه ټپونه ملهم شي چې د تیرو څلورو لسیزو راهیسې یو د بل په ضد په سینو کې جوړ شوي دي. کتابونه به یوې ډلې په دې سوځل چې د الحاد افکار پکې دي او بلې په دې له منځه وړل چې د رجعت پسندۍ خبرې لري په دواړو خواو کې به علم ته تاوان رسیدې او زموږ د ملت فکری کیږدۍ به نړیده د شرقي او غربي علومو په مطالعه سره به ملت په گډه د مادیت او معنویت په وزرونو په فکري پرواز مخ په وړاندې روان شي.
- زما دغه څیړنیز اثر د یو هغه رغبیل حیثیت لري چې ډیر څه پکې رغبیل شوي دي او کره کتونکو ته مې بې حسابه مواد پکې سره یو ځای کړي دي وگوري چې څه ډول پر یوه یوه

موضوع بیلا بیلو لیکوالو کار کړی دی او ځانونه یې د لیکوالو او شاعرانو په قطار کې درولي دي زه دا منم چې ځینو به نوې خبرې ضرور کړي وي خو ځینو بیا ډیرې هغه خبرې په خپلو اثارو کې تکرار کړي چې د ده ډیر له مخه بل چا کړي دي او ده بیا راخیستی دي، ګویا دغه ستاسو په لاس کې اثر ((ویاړلي)) زمونږ د ادبیاتو د پاکولو یا (Reconciliation) لپاره یوه ښه منبع ده، ډیرې اشارې پکې دې خو فقط دانا او بینا نظر په کار دی.

- په ماخذونو کې دلته ما دا هڅه کړې ده چې له هغو ټولو شته منابعو ګټه پورته کړم چې زما لاسرسی ورته شوی وي هغه که په هره ژبه کې وو او که په هره منطقه کې د اردو، فارسي، انګلیسي، عربي هر ډول منابع چې وې هغه مې راخیستې. زمونږ د څیړونکو یوه المیه دا ده چې هر څوک د هغه خپلې حوزې د مصادرو څخه څیړنه کوي ځکه یې نو موضوعات هم تر لنډو جغرافیایي حوزو پورې محدود پاتې شوي دي. د دې علت کله کله د څیړونکي د خپل طبیعت سهل پسندي وي خو کله کله بیا هغه جغرافیایي ستونزې وي چې له کبله یې هغه نورو منابعو ته لاس نه رسي خو زما لیونتوب زه له دغه قیدونو او آسان پسندیو له قیدونو څخه آزاد کړی یم او د خدای خصوصي لورینه ده چې ماته د ماخذونو په لټولو کې تر ډیره حده کومه ستونزه پیښه شوې نه ده.
- خدای دې نه کړي چې زما د ځینو دوستانو لیکوالو کوم عکس دې پاتې شوی وي خو البته دا به تر ما نه وي رارسیدلی.
- ما کوشش کړی چې د کتاب پر هر مخ یو نه یو عکس ضرور راشي خو که په ځینو مخونو کې عکس نه وي په لاس به نه وي راغلی.
- د یوه لیکوال بیخي ډیر اثار هم کیدلی شي زه چې یې په څومره خبر شوی یم هغه مې راخیستې دي خو عکس مې یې د ټولو اثارو ځکه نه دی راوړی چې بیا د کتاب بې ځایه اوږودوالی راتله.
- د ځینو لیکوالو یادونه به تاسې په یوه یا دوه لیکو کې ولولی د دې معنا به دا وي چې ما د هغه لیکوال د ژوند او اثارو په باب نور څه موندلي نه دي خو یادونه مې په دې راوړې ده چې د لیکوالو او شاعرانو په کتار کې د هغه نظم او نثر پر بنیاد محفوظ شي کوم چې زما په مطالعه کې راغلي وه.
- که ما د ځینو لیکوالو د ژوند او اثارو په باب څومره اوږده معلومات رااخیستې وه خو هغه مې هم چاڼ کړي دي او د څیړنې د معیار مطابق مې خپل مطالب ځینې راخیستې دي.

زه دا کله هم نه وایم چې زما دغه کار به ګواکې بشپړ وي خو دا په دعوی سره وایم چې دا ډول کار په پښتو کې تر اوسه نه دی شوی او زه تر ابده د پښتانه ملت په علمي حق خپلې غاړې بندې نه بولم.
پوره یو خدای دی ډیر خلک به داسې وي چې له ما به پاتې شوي وي.

دا خـــــاوره شاهده پر مونږ ټولو ده
ورک ځومره له مونږه څه لالونه دي

خو ما تر خپله وسه کوشش کړی چې د هر چا یادونه راوړم که څوک راځخه پاتې شوي دي هغه به یا هغه خلك وي چې تذکرو نه وي نیولي یا به یې هم کومه لیکنه او شعر د چاپ تر کومې نه وي راوتلي. لوستونکي کولای شي چې هغه نیمګړتیاوې په علمي همکاري راته په ګوته کړي او د موادو په رالیږلو سره دغه تشه پوره کړي چې په راروان وخت کې به که خدای کول بشپړ معلومات د همدغې کتاب په بل ایډیشن کې سره له خپلو زیاتونو تر تاسې ور ورسوو.
د ځیرنې د ډګر وګړي پوهیږي چې دا لار ځومره سترېیا لري حوصله غواړي او ستونزې ګالل، په ما هم یوه داسې ټوکه وشوه چې په اګست ۲۰۱۲ کې ما خپل دغه کار زما په خیال بشپړ کړ او د هغه په مناسبت مې په هغه شپه یو شعر هم ولیکه چې تاسو به یې د دې سریزې وروسته ولولئ خو د هغه پس به مې چې کله نوې تذکره په لاس راغله هغه به مې پکې ووډله. کله به مې چې یو نوی اثر په لاس راغی هغه به مې هم پکې راواخیسته. دا یوه نه ختمیدونکې لړۍ ده او لا دوام لري نو مې دا پریکړه وکړه چې دا شوی کار تاسو ته وسپارم پاتې کار به په راروانوایډیشنونو کې ځای پر ځای بشپړوم.
زه د خپلو ټولو غمخوارانو اشنایانو، علمي رجالو شکریه اداء کوم چې زما سره یې په دغه کار کې مرسته کړې ده لړۍ یې خورا اوږده ده ځکه نو د ټولو د نومونو د اخیستلو څخه ډډه کوم هسې نه چې څوك راڅخه پاتې شي او خوا یې بده او خاطر یې مانده شي. خو ځینې نومونه یادول ضروري بولم او د هغو د زړه له کومې مننه کوم. زما میرمن رحمت بي بي اڅکزۍ چې پخپله هم ماشاء الله د علم او پوهې څښتنه جوړه کړې ده او په کالج کې د پښتو ادبیاتو استاده ده هر وخت یې زه کار ته تشویق کړی یم او زما د هر ډول ارام خیال یې ساتلی دی. زما د ګرانو ځامنو عبدالمتین خان، عبدالمعیدخان او جبرایل خان اڅکزي لپاره ښه ژوند او سلامتي غواړم چې د کتابونو د تصویرونو د سکین په برخه کې یې زیار راسره ګاللی دی د پښتنو د بیلابیلو علمي حوزو د منورینو شکریه اداء کوم چې زما سره یې هر وخت علمي مرستې کړي دي د مردان د ساولډیر میا وکیل شاه فقیر خیل زما د خصوصي شکریې مستحق دی چې زما سره یې هر وخت بې کچه علمي مینه کړې ده.

محترم محمد اسماعیل یون د افغانستان د ملي تحریک او ژوندون راډیو تلویزیون مشر شکریه اداء کوم چې ماته یې خورا په پښتني مينه دغه کتاب چاپ او تر تاسو درنو لوستونکو او د تاریخ مغز ته ورساوه، کور یې ودان او له علم و فرهنګ سره یې مینه لا ډیره شه.

ډیر تفاوت دی په انسان کې د معنی په لحاظ
واړه لګیا دي ځینې ځان ځینې جهان جوړوي

د پيښور څخه ډاکټر زبیر حسرت، د چارسدې د باچا خان پوهنتون وائیس چانسلر ډاکټر فضل رحیم مروت، د پیښور د پښتو اکاډمۍ چیرمین ډاکټر نصر الله وزیر، نومیالی څیړونکی استاد همیش خلیل، د افغانستان د علومو اکاډمۍ استاد حبیب الله رافیع، استاد زلمی هیوادمل، استاد عبدالله بختاني، عبدالظاهر شکیب، رفیع الله نیازي، د کابل پوهنتون عبدالغفور لیوال، د ننګرهار پوهنتون لعل پاچا ازمون، د اسلام آباد څخه ډاکټر بصیر اڅکزی، د کوټې قاري احسان الله غزالي، د کوټې د پښتو اکاډمۍ صدر سید خیر محمد عارف، د کندهار احمد الله صحاف، عبدالرؤف حقیار، مطیع الله روهیال، حاجی محمد ظاهر څرک، شوکت ترین، د پښین عصمت الله خان ترین او عصمت الله زهیر ته کور ودانی وایم. چې زما په علمي مربیانو کې شامل دي. د دانش خپرندویه ټولنې قدرمند اشنا اسد الله دانش چې په غرب و شرق کې یې د پښتو اثارو نه شلیدونکي مزي وغځول او پښتو یې په چاپي بڼه کې شرق و غرب ته ورسوله زما د دغه کتاب په چاپ کې یې زما سره بشپړه توان په کار اچولی دی. د ګران خلیل الله تصمیم، بسم الله خیالي، ګران محرابي، محمد سلیمي او عبدالرحمن حنیف شکریه اداء کوم چې هره یوه په خپل وار د دې کتاب د ځینو برخو کمپوزنګ ترسره کړ. دا به د نعمت ناشکري وي چې زه د ګران کشر سپین سهار شکریه نه کړم اداء چې زما سره یې د دې کتاب په اوډنه او ډیزاین کې خپل په زړه پورې برخه واخیسته.
په پای کې په دې کتاب کې راغلیو ښاغلیو-ویاړلیو ته د خوشال بابا دا بیت ډالۍ کوم:

د بلـــــــــــندې په قامت باندې مَین یم
هر چې لویې چارې کاندي هغه لوی شي

ټول دې لوی شي، لا دې لوی شي، لا دې لوی شي...

درنښت مو غواړم
ډاکټر عبدالرؤف رفیقي
۲۳/ فبروري/ ۲۰۱۷
دانش خپرندویه ټولنه – کابل

# ویاړلي

له کلونو مې ارزو وه د ویاړلو
د کلونو پس تکمیل شو هزار شکر
سر مې دروند نظر مې خام ملا کږه شوه
خو وړې مې شوې څه سپکې بار بار شکر
کاشکې زما په ژوند کې چاپ شي بیا به ځوان شم
شکر شکر شکر دی د بادار شکر

***

د پښتون په کور لمبې د ستم گرځي
ارشیف چور شو نسخې چور شوې اثار چور شوه
ما ویل ښه دی زماتر عصره به یې خوندي کړم
په ویاړلي کې که څه هم په ناتار چور شوه
د لادین او دین په نوم له منځه ولاړه
لولپه شوه هبته شوه بسیار چور شوه

***

ډیرې شپې مې د خوږې ځوانۍ ترې جار کړې
تر څو غاړې د پښتو ته هار تیار کړم
پښتنو ځلمو ته برم علمي ورياد کړم
د قلم له نومیالو یې خبر دار کړم
په هیڅکله مې احساس د ستړیا نه وو
پوهیدمه چې زه کړمه عظیم کار کړم

***

ډیر دوستان مې شوه خوابدي چې ته ورک یې
ما یوه یوه لمحه تر علم دود کړه

چا به وويل مغرور دی تپوس نه کړي
ما کارونه وپښتو ته د بهبود کړه
د خليل په ايمان ګډ د وخت په اور شوم
ټول اورونه مې ساړه د هر نمرود کړه

***

اولادو ته شکايت وو چې وخت غواړو
ما به وويل قانع يم پلار ضرور دی
تی افراد ياست زما وخت ټول د ملت دی
ښه وم پوه چې په ماڼي هر تربور دی

د ببيانو رويه د وخت غوښتو وه
ما به وويل ستي بخت د عصر نور دی

***

ډير دودونه ميلمستياوې مې قربان کړې
فقط تش وفاتحو ته به وزګار شوم
کله کله به ماښام چې په کار بوخت شوم
نابېره به راپيښ پر روڼ سهار شوم
پرسترخوان به مې لس شل نارې تر غوږ شوې
وسرې ډوډۍ ته مخ به چار ناچار شوم

***

شاوخوا راباندې ټول ماخذونه
د پښتو اردو فارسي او عربي دي
شته د نورو ژبو هم چاپ و ناچاپ
ډير مې خپل لږ مې راکړي مربي دي

د پښتو په باب چې هر څه ما پيدا کړه
پر تاريخ مذهب پر شعر که ادبي دي

***

هر پښتون ليکوال شاعر چې په لاس راغلی
پر کتاب وو، پر اخبار وو که پر نيټ وو
ما راخيستی په اخلاص که هر ځای ياد وو
کتابونه پر بالښت هم مې پر کټ وو
ايډياوې رانه غلا کړې څه ملګرو
دغه کار مې تر اخيره پورې پټ وو

***

که يې نظم که يې نثر که يې هر څه
د نړۍ په هر يو ګوټ کې چې پښتون وو
د نژاد ګړدود توپير ورپکښې نشته
زما تر عصره چې ژوندي دي که پرون وو
د زمان مکان له قيده مبرا دي
په دې لاړ کې مې پيلي که بيلتون وو

***

نيمګړتياوې به ضرور ځينې پکې وي
د بنده په ماندګيو په اقرار يم
چې په قدر د يوسف د حسن پوه شي
په تلاش فقط د هغه خريدار يم
ما د علم دسترخوان په اخلاص خور کړ
راشۍ راشی چې حاطم د دې د يار يم

***

نه سر کار نه اداره نه څه پروسه ده
له اخلاصه ډک سپیڅلی یو پښتون یم
عاجزي مې د خالق په در مقبوله
چې به لار لکه میړی اخته په یون یم
د پښتو ډیوه که خدای کوله نه مري
خپل ملت له هیله من د ښه ژوندون یم

***

څوك بی راوړي ماخذ څوک به یې پریږدي
دا د هر چا په خپل ظرف پورې تړلې
ما چې هر څه له کوم ځایه دي راخیستي
حواله مې و هغه ته ده لیکلې
که کوم بل څوك پر کوم چا نور لیکل غواړي
و هغه ته مې پوره لار ده ښودلې

***

په دنیا کې دي د خلکو دوه ډولونه
چې خبرې کوي کله کار کوای شي
کوم وګړي چې د کار د لیلی عشق کړي
هغه کله وخت خبرو ته ایستای شي
د یارانو خوښه هر څه چې کی وایی
زما زیار هر څوک په خپل کاڼي تلای شي

***

له کوږکه تر خیبر و هندوکشه
وهم کوکي چې د علم طلبګار شی
د خپل کور په جوړیدو کې غفلت مه کړی
د پردو ودسیسو ته ټول بیدار شی

د عمل ډيوې کړې بلې تيارې تښتې
په نړۍ کې چې دا ياست په هسک دستار شي

***

خدايه دغه کار مقبول کړې ستا په فضل
د نړۍ غرو و رغو ته مې زيار يو شي
زما کوکې مې په درست ملت ته واوري
ارزښتونه مې ضرور د دې کار يو شي
کمزوري سهوه مې خوی بنده مانده يم
عفوه غواړم ستا په در په استغفار يم

***

چې کومک يې دی راکړی د هر ډول
د هغو ټولو ملګرو منت بار يم
دومره ډير دي هر يو نوم اخستای نه شم
د يارانو د يارۍ مينې قرضدار يم
يو روف بل رفيقي يم شکر خدايه
د يارانو په ياري خان و سردار يم

***

پښتنو ګلونه کيږدۍ زما پر قبر
خدمتونه د پښتو مې په راستي دي
له ځلميو ښو ځوانانو هيله من يم
لا به خيژي لا به پاځي په مستي دي
که اخلاص پښتانه ورکړي وپښتو ته
ځي تيارې د جهالت تښتي نيستي دي

***

**عیسوي دوه زره دولس میاشت اګست ده**
**ده دویمه ورځ روژه څلیروشتمه**
**د شپې دوی بجې قریب وخت پیشلمی دی**
**ماشومان په خوړه خوب ویده بې غمه**
**تنده ډېره ده روژه سپاړس ساعته**
**سره څیله شوه اوس رخصت له تندې مرمه**

***

۲۴ اګست ۲۰۱۲ کاسی واټ کویټه

# نیولیک


س

سا‌پی ازاد خان ........................................ ۱۹۷۶
سا‌پی احمد جان خان ملک ........................................ ۱۹۷۶
سا‌پی امام الدین ........................................ ۱۹۷۶
سا‌پی امروز خان ........................................ ۱۹۷۶
سا‌پی امیر سلطان ........................................ ۱۹۷۶
سا‌پی بابا سید رحمت ........................................ ۱۹۷۶
سا‌پی پامیر ........................................ ۱۹۷۶
سا‌پی پاینده محمد ډاکتر ........................................ ۱۹۷۶
سا‌پی تقدیر ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی حبیب الله (قاري) ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی حفیظ الله ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی حیات الله ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی خان شاه ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی خانواده سا‌پی ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی خوشحال ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی دوا خان ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی رحمت الله جنرال ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی رحمت خان ........................................ ۱۹۷۷
سا‌پی رحمداد خان ........................................ ۱۹۷۸
سا‌پی رشید الله ........................................ ۱۹۷۸
سا‌پی رفیع الله ........................................ ۱۹۷۸
سا‌پی روح الله ........................................ ۱۹۷۸
سا‌پی سراج ........................................ ۱۹۷۸
سا‌پی سرور ........................................ ۱۹۷۸
سا‌پی سعید الله ........................................ ۱۹۷۸
سا‌پی سلطان محمد دوکتور ........................................ ۱۹۷۸
سا‌پی سلیم ........................................ ۱۹۷۹
سا‌پی سمیع الله ........................................ ۱۹۷۹
سا‌پی سید احمد جان مامور ........................................ ۱۹۷۹
سا‌پی شاه محمد ........................................ ۱۹۷۹
سا‌پی شاه ولي ........................................ ۱۹۷۹
سا‌پی شهسوار سلیم ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی شیریندل ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عابد حیات ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عبدالباسط ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عبدالجبار ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عبدالخالق (انجینر) ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عبدالخلیل ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عبدالرزاق ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عبدالعظیم خان ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عبدالغفار ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عبدالقیوم ........................................ ۱۹۸۰
سا‌پی عبداکریم ........................................ ۱۹۸۱
سا‌پی عبدالله خان ........................................ ۱۹۸۱
سا‌پی عبید الله (مولانا) ........................................ ۱۹۸۱
سا‌پی عبدالله ........................................ ۱۹۸۱
سا‌پی عبدالوهاب (ابو ضیا) ........................................ ۱۹۸۱
سا‌پی عزت الله ........................................ ۱۹۸۱
سا‌پی عزیز الله ........................................ ۱۹۸۱
سا‌پی عطاالله ........................................ ۱۹۸۲
سا‌پی علي خان ........................................ ۱۹۸۲
سا‌پی عنایت الله ........................................ ۱۹۸۲
سا‌پی غلام حسن خان ........................................ ۱۹۸۲
سا‌پی غنچه گل ........................................ ۱۹۸۳
سا‌پی کریم الله ........................................ ۱۹۸۳
سا‌پی گل شاه ........................................ ۱۹۸۳
سا‌پی لطف الله پوهنوال ........................................ ۱۹۸۳

ساپی ماڼو انجنير ........................................ ۱۹۸۳
ساپی مجيب الرحمان ........................................ ۱۹۸۳
ساپی محمد اسماعيل ........................................ ۱۹۸۳
ساپی محمد حسن ........................................ ۱۹۸٤
ساپی محمد داود ........................................ ۱۹۸٤
ساپی محمد انور ........................................ ۱۹۸٤
ساپی محمد شريف ........................................ ۱۹۸٤
ساپی محمد طاهر ........................................ ۱۹۸٤
ساپی محمد طاهر ........................................ ۱۹۸٤
ساپی محمد قاسم ........................................ ۱۹۸٤
ساپی محمد (ملا) ........................................ ۱۹۸٤
ساپی محمود ........................................ ۱۹۸٤
ساپی م خ ........................................ ۱۹۸٥
ساپی مسافر خان ........................................ ۱۹۸٥
ساپی مسري ........................................ ۱۹۸٥
ساپی مسعود دوکتور ........................................ ۱۹۸٥
ساپی مغدود ........................................ ۱۹۸٥
ساپی مفتاح الدين ........................................ ۱۹۸٥
ساپی ملنگ جان ........................................ ۱۹۸٥
ساپی نثار احمد ........................................ ۱۹۸٥
ساپی نصر الله ........................................ ۱۹۸٦
ساجد اسرار الدين ........................................ ۱۹۸٦
ساجد حادق الرحمان ........................................ ۱۹۸٦
ساجد حضرت خان ........................................ ۱۹۸٦
ساجد ساجد حسين ........................................ ۱۹۸٦
ساجد خان ........................................ ۱۹۸٦
ساجد خان ........................................ ۱۹۸٦
ساجد ساجد علي ........................................ ۱۹۸٦
ساجد ساجد عمران ........................................ ۱۹۸٦
ساجد سبحان ساجد ........................................ ۱۹۸۷
ساجد سيد حبيب ........................................ ۱۹۸۷
ساجد سيد محبوب شاه ........................................ ۱۹۸۷
ساجد شير زاده ........................................ ۱۹۸۷
ساجد صداقت شاه ........................................ ۱۹۸۸
ساجد علي ........................................ ۱۹۸۸
ساجد غلام مرتضی ........................................ ۱۹۸۸
ساجد محمد اسحاق ........................................ ۱۹۸۸
ساجد محمد رياض ........................................ ۱۹۸۸
ساجد محمد زرشاد ........................................ ۱۹۸۸
ساجد محمد عزيز ........................................ ۱۹۸۸
ساجد ملنگ يار محمد حسن ........................................ ۱۹۸۸
ساجد منظر جان سيد ........................................ ۱۹۸۸
ساج غلام جيلاني ........................................ ۱۹۸۹
ساجن اداس محمد اعظم ........................................ ۱۹۸۹
ساحر اپريدي زينت شاه ........................................ ۱۹۸۹
ساحر اريوبي ........................................ ۱۹۸۹
ساحر خان ........................................ ۱۹۸۹
ساحر رحمان ساحر ........................................ ۱۹۸۹
ساحر سردار احمد ........................................ ۱۹۸۹
ساحر عبدالرحيم ........................................ ۱۹۹۰
ساحر فقير حسين ........................................ ۱۹۹۰
ساحر قربان علي ........................................ ۱۹۹۰
ساحر يوسف خان ........................................ ۱۹۹۰
ساحل اسد الله ........................................ ۱۹۹۰
ساحل امير رازق ........................................ ۱۹۹۰
ساحل احمد بختيار ........................................ ۱۹۹۰
ساحل ايمل ساحل ........................................ ۱۹۹۱
ساحل باجوړي ........................................ ۱۹۹۱
ساحل بهرام خان ........................................ ۱۹۹۱
ساحل حشمت ساحل ........................................ ۱۹۹۱
ساحل رحيم داد ........................................ ۱۹۹۱
ساحل رياض خان ........................................ ۱۹۹۱
ساحل شوکت خان ........................................ ۱۹۹۱
ساحل عتيق الله ........................................ ۱۹۹۲
ساحل عزت الله ........................................ ۱۹۹۲
ساحل غلام صديق ........................................ ۱۹۹۲
ساحل کاشف علي شاه (سيد) ........................................ ۱۹۹۲
ساحل گل دراز ........................................ ۱۹۹۲

ساحل محمد اسلم .................................. ۱۹۹۲
ساحل محمد داؤد .................................. ۱۹۹۲
ساحل محمد نبي .................................. ۱۹۹۲
ساحل محمد یوسف .................................. ۱۹۹۲
ساحل منگل محمد .................................. ۱۹۹۳
ساحل یار حسین .................................. ۱۹۹۳
ساحل یوسفزی محمد خالد .................................. ۱۹۹۳
سادات احمد شاه اغیز .................................. ۱۹۹٤
سادات سید اسحاق .................................. ۱۹۹٤
سادات سید زاکرشاه .................................. ۱۹۹٤
سادات سید فاروق .................................. ۱۹۹٤
سادات ملیار سید .................................. ۱۹۹٤
سادات عبدالاحد .................................. ۱۹۹٥
سادات عنایت الله .................................. ۱۹۹٥
سادات کمال .................................. ۱۹۹٥
سادات میوند .................................. ۱۹۹٥
ساد خیر محمد .................................. ۱۹۹٥
ساده اسحاق .................................. ۱۹۹٥
ساده حضرت امین .................................. ۱۹۹٥
ساده خالو خان .................................. ۱۹۹٦
ساده ساړي خان .................................. ۱۹۹٦
ساده شیراز گل .................................. ۱۹۹٦
ساده عبدالرحیم .................................. ۱۹۹٦
ساده کرامت الله .................................. ۱۹۹٦
ساده معزالله جان .................................. ۱۹۹٦
ساده مومند صادق .................................. ۱۹۹٦
ساده میان شیر .................................. ۱۹۹٦
ساران محمد عیان .................................. ۱۹۹٦
سارجن محمد عظیم میجر .................................. ۱۹۹٦
ساریم پرویز سلیمان .................................. ۱۹۹٦
سارنگزی صالح محمد .................................. ۱۹۹۷
سارنگزی عبدالباسط .................................. ۱۹۹۷
سارنگزي مقیم خان .................................. ۱۹۹۷
سارنگ محمد حسن .................................. ۱۹۹۷
ساروان بزگر .................................. ۱۹۹۷
ماخذ: پلوشه کراچي جون ۱۹۹٦/ ٤۳ سارواني محمد
اسماعیل انجینر .................................. ۱۹۹۷
ساطع محمد عمر سناتور .................................. ۱۹۹۷
ساعي محمد عالم .................................. ۱۹۹۷
ساغر اپریدي امیر محمد .................................. ۱۹۹۷
ساغر احمد علي شاه .................................. ۱۹۹۸
ساغر اظهر شاه .................................. ۱۹۹۸
ساغر اورنگ زیب .................................. ۱۹۹۸
ساغر اویس احمد (سید) .................................. ۱۹۹۸
ساغر بټني خیر محمد .................................. ۱۹۹۸
ساغر خټک سعادت خان پروفیسر ډاکټر .................................. ۱۹۹۸
ساغر ریاض الرحمان .................................. ۱۹۹۸
ساغر سراج بهار ډاکټر .................................. ۱۹۹۹
ساغر سوراني صامد الله .................................. ۱۹۹۹
ساغر صاید الله .................................. ۱۹۹۹
ساغر عبدالرحمان .................................. ۱۹۹۹
ساغر عزت الله .................................. ۱۹۹۹
ساغر غلام محی الدین .................................. ۱۹۹۹
ساغر گنده پور .................................. ۱۹۹۹
ساغر لطیف ساغر .................................. ۱۹۹۹
ساغر محمد امین .................................. ۱۹۹۹
ساغر محمد ریاض .................................. ۱۹۹۹
ساغرمحمد عمر .................................. ۲۰۰۰
ساغر ملا گوري شاهنواز .................................. ۲۰۰۰
ساغر هدایت الله .................................. ۲۰۰۰
ساغر یوسفزي سراج بهادر .................................. ۲۰۰۰
ساقي اپریدي .................................. ۲۰۰۰
ساقي حسراني عبدالرزاق .................................. ۲۰۰۰
ساقي حیدر شاه .................................. ۲۰۰۰
ساقي سیدولي .................................. ۲۰۰۰
ساقي شتمن خان .................................. ۲۰۰۰
ساقي شیر بهادر .................................. ۲۰۰۱
ساقي عارف خان .................................. ۲۰۰۱

ساقي عبدالخالق .......................... ۲۰۰۱
ساقي فضل رحيم.......................... ۲۰۰۱
ساقيبار راز محمد (ملا) .......................... ۲۰۰۳
ساقيبار عزت الله .......................... ۲۰۰۳
ساقيبار نامراد عرفان روح الله .......................... ۲۰۰۳
ساکن حکيم الله .......................... ۲۰۰۳
ساګر اويس جواد .......................... ۲۰۰۳
ساګر تنقيدي زر داد .......................... ۲۰۰۳
ساګر رامبيل خان.......................... ۲۰۰٤
ساګر سليم.......................... ۲۰۰٤
ساګر شوکت علي .......................... ۲۰۰٤
ساګر عارف خان .......................... ۲۰۰٤
ساګر عبدالرحمان .......................... ۲۰۰٤
ساګر عبدالقيوم.......................... ۲۰۰٤
ساګر عثمان ساګر .......................... ۲۰۰٤
ساګر علي بهادر .......................... ۲۰۰٤
ساګر فضل علي .......................... ۲۰۰٤
ساګر فضل کريم .......................... ۲۰۰٤
ساګر لعل زاده .......................... ۲۰۰۵
ساګر محمد شعيب.......................... ۲۰۰۵
ساګر مختار علي .......................... ۲۰۰۵
ساګر منهاج ساګر .......................... ۲۰۰۵
ساګزی لمر څرک .......................... ۲۰۰۵
سالار اقبال حسين .......................... ۲۰۰۵
سالار خان (مولانا).......................... ۲۰۰۵
سالارزی پزير ګل .......................... ۲۰۰۵
سالارزی سالک.......................... ۲۰۰۵
سالارزی عبدالرحيم .......................... ۲۰۰۵
سالارزی عبدالولي .......................... ۲۰۰٦
سالارزی محمد سردار حسين .......................... ۲۰۰٦
سالارزی محمد صفدر .......................... ۲۰۰٦
سالارزی محمد نعيم (معاون سرمحقق).......................... ۲۰۰٦
سالار سالار خان .......................... ۲۰۰٦
سالار سيد خان.......................... ۲۰۰٦
سالار عابد جان.......................... ۲۰۰٦
سالار معز الله .......................... ۲۰۰٦
سالک ذهين الله .......................... ۲۰۰۷
سالک عبدالحسيب.......................... ۲۰۰۷
سالک فضل هادي مولوي.......................... ۲۰۰۷
سالک محمد اسلم .......................... ۲۰۰۷
سالک محمد افتخار.......................... ۲۰۰۷
سالک محمد جان.......................... ۲۰۰۷
سالک محمد سعيد .......................... ۲۰۰۷
سالک مصطفٰی سالک .......................... ۲۰۰۷
سالک نصيب زاده .......................... ۲۰۱۰
سالم .......................... ۲۰۱۰
سالم سيف الدين .......................... ۲۰۱۰
سالم شير اغا .......................... ۲۰۱۰
سالم محمد رفيع .......................... ۲۰۱۰
سالمي محمد قاسم .......................... ۲۰۱۰
سالو.......................... ۲۰۱۰
سامع صفي الله .......................... ۲۰۱۰
سامع مظهري محمد قاسم قاضي (پروفيسر).......................... ۲۰۱۰
سامي ساپی دين محمد .......................... ۲۰۱۱
سامي محمود سامي .......................... ۲۰۱۱
سانو ملنګ احسان الکريم.......................... ۲۰۱۱
ساون.......................... ۲۰۱۱
سائبان ذيشان .......................... ۲۰۱۱
سائر احمد شاه.......................... ۲۰۱۱
سائر سردار احمد .......................... ۲۰۱۱
سائر شينواری سيد اکبر .......................... ۲۰۱۱
سائر لعل بدين .......................... ۲۰۱۲
سائل احمد خان .......................... ۲۰۱۲
سائل اصراف ګل .......................... ۲۰۱۲
سائل اصغر سائل .......................... ۲۰۱۲
سائل الله محمد حاجي.......................... ۲۰۱۲
سائل خادم اليار.......................... ۲۰۱۲
سائل خواجه محمد (پروفيسر) .......................... ۲۰۱۳

